بواځې پدې خیال چه د دولت آباد فتح ځما په نوم تمامه شي دخان جهان انتظار ئې ونه کړ او حمله ئې وکړه
او د دولت آباد نه دولس کروهه پورته په بیضاپور نومی ځای کښې ئې د مغلو جبهې
سره مقابله وشوه او عبدالله خان پدغه مقابله کښې ماتې وکړه او و تښتید او علی مردانخان
او مرزا میرخوردار خان چه خان عالم خطاب ئې درلود دواړه سرداران ژوبل او گرفتار
کړی شو خان جهان لودی د دولت آباد څخه ۲۴ کروهه پورته وچه ده د عبدالله خان د ماتې
او تښتید او او د دواړو سردارانو د ژوبلې او نیولو خبر واوریده او دغه حال ورته معلوم شو په
دغه ځای کښې خان اعظم هم د خپلو لښکرو سره دخان جهان سره یو ځای شو او شهزاده ورو ستو
په ملکاپور نومی ځای کښې اقامت وکړی وهر کله چه شاهي لښکر د عبدالله خان د ماتې او
علی مردانخان او خان عالم د واقعاتو او ماتې او نیولو نه خبر شو نو ددوی او ددوی د سردارانو
حوصلې ټیټې او خرابې شوی او ټولو دا خبره ښه او مناسب وګڼله چه بایه بیرته برهانپور ته
ولاړ شو ځکه چه د دښمن لښکر ډیر زیات او شاهي لښکرو ته د جنګ د لوازمو او دوا رسولو کوم
پوره انتظام نشته دی . خان جهان لودی د بیرته تللو څخه بالکل انکار وکړ او
دوی ته ئې وویل چه تاسی ټول بیرته ولاړ شئ او زه بواځې دخپلو شخصي سپو سره دلته پاتې کېږم
او په دښمن حمله کوم دا اختلاف ډیر وزد شو او خبره دې ته ورسیده چه خان اعظم او مان سنګه
او نور سنګه بوندیله او خواجه ابو الحسن او نور ټول سرداران د خان جهان لودی خبرې ته
ورغلل ئې ټولو دا خبره غوښتله چه دی په هر راز علو بیرته تللو ته آماده او دی په دې خبره
رضا او اداره کړی چه بیرته ولاړ شي مګر خان جهان بالکل دې کار ته آماده نشو په دې
اصرار او انکار لږی ډیری ورځې تیرې شوی او د نظام شاهي لښکرو ځینې دستې ددوی
د لښکر ځای ته را نژدې شوی او خپل جسارت ئې دوی ته ښکاره کړ چه دغه دستې دوی
ماتې کړی او بیرته ئې وشړلوی ددې قضیې د فیصله کولو او د خان جهان د بیرته بوتللو دپاره
مان سنګه او خواجه ابو الحسن او نورو سردارانو دا تدبیر غوره کړچه بایه یو سند تیار کړشي
لکه چه په دې مضمون یو سند ولیکل شو چه خان جهان په هیڅ صورت بیرته تللو ته آماده
کېږي مونږ د حکومت مفاد او شاهي مقاصد په نظر کښې نیولی دا خبره مصلحت ګڼو چه له دې
ځای څخه بیرته وګرځو او دولت آباد خواته بالکل وړاندې ولاړ نشو مونږ ټول خان جهان
په دې خبره مجبوروو چه بیرته ولاړ شي، او که زمونږ دا نظریه دپاچا خوښه نه شوه نو مونږ به
د شاهي عتاب مورد او مستحق یواو خان جهان ددې خبرې او مسؤلیت سره کوم ربط او علاقه
نه لري مونږ دا کاغذ خان جهان ته د سند په ټول ورکوو هر کله چه په دغه سند ټولو
امضاګانې وکړی او مکمل شو او دغه سند خان جهان ته وړاندې کړشو نو دی بیرته تللو ته

نیاز او مانده شو نیکن تر او سه لا دوی روان شوی نه وو چه د ملکا پور په شهزاده کاغذ په دی مضمون را ورسیده چه د احمد نگر نظام شاهی حکومت د بیجاپور عادل شاهی حکومت په ذریعه د روغی درخواست کړیدی او د بیجاپور د سفارت نه مونږ شخه را رسیدلی دی . په عارضی ډول جنگه معطل کړی او ټول سرداران او امراء د خپلو لښکرو سره ملکا پور ته پیر ته دی دیاره راشی چه د روغی په شا او خوا کښی مشوره وکړو لکه چه ټول ملکا پور ته ورسیدل او صلح نامه ترتیب شوه .

هر کله چه په ملکاپور کښی صلح نامه لیکل کیدله او تکمیل ته رسیدله په شلم د محرم سنه ۱۰۲۰ ه کښی حبیب الله هروی د خان جهان لودی ملازم د مخزن افغانی نومی کتاب په لیکلو پیل وکړه او په لسم د محرم سنه ۱۰۲۱ کښی په برهان پور کښی ئی دا کتاب خلاص او ختم کړ . د صلح نامی د تحریر او تکمیل نه وروسته شهزاده پرویز د ملکا پور شخه روان شو او د محرم د میاشتی په آخر سنه ۱۰۲۰ ه کښی د امرا و سره برهان پور ته ورسید او د ربیع الاول د میاشتی سنه ۱۰۲۱ ه پوری خان جهان لودی په برهان پور کښی د شهزاده پرویز سره وو او د ربیع الاول په نوهم تاریخ سنه ۱۰۲۱ د شاهی حکم سره سم خان جهان لودی د برار د صوبی گورنر مقرر شو او د برهان پور نه د ایلچ خواته روان شو جهانگیر د برار د گورنری فرمان په خپل قلم لیکلی او د خلعت او توری سره ئی ده ته لیږلی و . په دغو وختو کښی د برار صوبه یوه سرحدی صوبه وه او د دی صوبی د حکومت دپاره ډیر هوښیار او معتمد شخص یکار و . او همپه دی کال د شعبان په میاشت کښی د جمعی په شپه په ایلچپور کښی خان جهان په خوب کښی د حضرت صلی الله علیه وسلم زیارت وکړ خان جهان چه سهار د خوب سره را ویښ شو نو د دی خوشحالی په اثر ئی خپل ټول مال او شته په غریبا و وویشه او په ایلچپور کښی خان جهان د ذالحجی ۱۰۲۲ پوری پاتی شو او د دی سرحدی صوبی انتظام ئی په ډیر ښه شان سره وکړ د اتبه په ده شخه ډیر علما او صلحا او صوفیان راټول وو او په دی ځای کښی به ده د شعرا وو ختونو ډیره برخه د علما نو او ښو خلکو په مجلس او مصاحبت کښی تیر یدله په ایلچپور کښی د جهانگیر شقه چه پاچا په خپل قلم لیکلی وه خان جهان شخه را ورسیده چه د هغی الفاظ دا وو ،

فرزند سعادت مند صاحب اقبال گوهر درج دولت و اجلال منظور انظار مرید با اقتدار خان جهان باستفاضهٔ انوار خاطر داش آرای منظور و ملحوظ بوده خاطر اشرف اقدس مارا نگران خود شناسد و چون مهمات دکن عمدة الملک رکن السلطنت خان خانان سپهسالار وابسته بالفعل مهمی که باعث توقف آن فرزند باشد در میان نیست باید که خود را متوجه در گاه سازد و اگر درین باب تعطیل نماید بعد ازین بطلب او چیزی نوشته

نخواهدشد - « ددی شاهی شقی په رسیدلو بیګوان داس دسلطنت و کیل چه په ایلچپور کښی ؤ خان جهان ته ئی ددی خبری مشوره ورکړه چه باید ته اوسږو په دی خصوص کښی دشاهزاده پرویز او خان خانان سره مصلحت وکړی ددی ویناپه اثر خان جهان برهان پورته اطلاع ورکړه اوشاهزاده یې ددی کیفیت خبر کړ او ددی اطلاع او مصلحت په جواب کښی شاهزاده فی الحال خان جهان ته وایکل چه ته ایلچپور بالکل پری نږدی اوزه به پاچاته ستاپه خصوص کښی ولیکم چه په دی موقع کښی دایلچپور څخه دخان جهان تللی په هیڅ صورت مناسب نه دی . شاهی دربارته دشاهزاده ددغی خط رسیدلو او دخان جهان پاچاڅخه نه ورتللو حاسدانو ته دخبرو جوړولو موقع ورکړه او هغو راز راز دروغ شکایتونه جوړ او دپاچاپه زړه او دماغ کښی ئی دا خبره کینولـه چه خان جهان پخپله داخبره نه غواړی چه دربارته راشی او دا ځکه چه هغه ددکن دشاهانو سره دوستانه تعلقات قائم کړیدی دی پروپاګنداو خبرو په پاچا دومره اثر وکړ چه پاچا خان جهان دبرار دصوبه داری څخه دګجرات حکومت ته تبدیل کړ او دتبدیلی په فرمان کښی ئی ورته ولیکل چه دبرار دصوبی څخه دګجرات صوبه ښه ده او په دغه ځای کښی دګولی او بیهل قام هغومتمرد خلقوچه په غرونو کښی ئی ځای نیولی دی اوسر کشی اوبی لیاری توب ئی اختیار کړیدی ستاپه ورتللو به دهغو به شان سره علاج او چاره وشی ، لکه چه خان جهان د ایلچپور څخه روان شو اول برهان پورته دشاهزاده وابدلو دپاره ولاړ اوله دغی ځای څخه ګجرات ته وخوځیده .

دشاهزاده خان جهان سره دومره مینه پیداشوی وه چه شاهزاده په هیڅ صورت دا خبره نه غوښتله چه خان جهان لودی له ده څخه بیل او جلاشی هر کله چه خان جهان ګجرات ته ورسید نوپه تهالنیر نومی قلاکښی ئی ځای ونیواو په شوور څو کښی دغه صوبه دهر راز فتنو څخه پاکه شوه . هر کله چه په ګجرات کښی دخان جهان څخه پوم کال تیر شونو دیته و روسته شاهزاده پرویز دپاچا حضورته یوه عریضه په دی مضمون ولیږله چه اوس په ګجرات کښی دخان جهان پاتی کیدلوته ضرورت نشته دی اوزه دا غواړم چه خان جهان ته ددی خبری اجازه ورکړی چه هغه ماسره په برهان پور کښی وی - جهانګیر د شاهزاده دا عریضه منظوره کړه او خان جهان دشعبان په ۲۷ سنه ۱۰۲۳ دتهالنیر دقلا څخه روان شو او درمضان په اوری ورځ برهان پورته دشاهزاده څخه ورسید هر کله چه په برهان پور کښی دخان جهان شاهزاده سره نه میاشتی تیری شوی نو نور جهان بیګم جهانګیر په دی خبره مجبور کړچه خان جهان دبرهان پور څخه دارالسلطنت ته راوغواړی لکه چه ددغی فرمایش په اثر جهانګیر بیادو باره مکتوب ولیکه او په دغه مکتوب کښی ئی ده سره دخپل ملاقات شوق ښکاره کړ او خان څخه ئی راوغوښت په دی ځل کښی دشاهزاده پرویز قول ته پیروند او

کوښښونه بیکاره اوې نتیجې ثابت شو او د جهانګیر له خوا د خان جهان ذراعو ښتلو په خصوص کښې مسلسل فرامین را ورسیدل او په ٤ د جمادی الثانی ۱۰۳٤ ه خان جهان د برهان پور څخه د اجمیر خواته چه جهانګیر هم په دغې ځای کښې و روان شو او شاهزاده پرویز د خان جهان لودی سره په ډیر خپګان او ښکو په ګوستر ګوداع وکړه هر کله چه خان جهان اجمیر ته دوه دری منزله نژدې شو نو جهانګیر دده داستقبال د پاره شاهزاده خورم ( شاهجهان ) دده مخې ته واستوه او د خپل یو مخصوص معتمد په لاس ئې ورته خلعت او خاصه آس هم ولیږه اوهر کله چه دی اجمیر ته یو منزل نژدې شو نو بیا دده د استقبال د پاره د نورجهان پلار اعتماد الدوله او آصف خان وزیر اعظم او مهابت خان دربواده ډیر اوی وزیران واستول ـ او په اجمیر کښې د خان جهان د پاره ډیره عالی خیمه اوسرا پرده نصب کړی شو او د نور جهان له خوا راز راز میوې او شیرینی او دیباچا د مطبخ نه راز راز خوراکونه دغې خیمې ته واستول شو او د رنګه په د رنګ او ساعت په ساعت به ئې کوم پوښتې دغې خیمې ته د تحفې په ډول لیږه د مازیګر دا ما ځه نه وروسته خان جهان دپاچا حضور ته حاضر شو او پاچا چه دا ونه ولیدلو ورته ئې وویل « مرحبا ! خان جهان خوش آمدی پیش بیا ! » هر کله چه خان جهان شاهی تخت ته نژدې ورسید نو پاچا په ځغلګو ودرید او خان جهان سره ئې معانقه وکړه او ورسره ځای وټ اوده ته ئې ښکلی کړه اودیته وروسته ئې ور څخه په ډیره مینه اوخصوصی التفات دسفر دحالاتو او دخیریت پوښتنه وکړه خان جهان دپاچا حضور ته ډیری قیمتی تحفې او نذرانې وړاندې کړی او دشپې بیا پاچا دی خپل ځان څخه دخصوصی صحبت د پاره راوغوښت او تر ډیره وخته پورې ئې ورسره په هره موضوع کښې خبرې اترې وکړې تردې ځایه پورې کوم حالات چه د خان جهان لودی په خصوص کښې لیکل شویدی دغه اکثر دحبیب الله خان هروی د تصنیف دمخزن افغانی څخه اخیستل شویدی او حبیب الله خان هروی د خان جهان لودی د واقعاتو عینی شاهد او دغه راوی دی چه دغه واقعات ئې په خپلو سترګو لیدلی دی ، دحبیب الله خان هروی بیان خان جهان په اجمیر کښې خان جهان ته رسوی او په دی ځای دغه بیان ختمیږی او تردی ځایه پورې دخان جهان لودی زمانه دده دعروج اواقبال زمانه ګڼل کیږی اود یته وروسته دده ازوال شروع کیدونکی دی ·

## د خان جهان لودی د ژوندون نیمه وروستنی برخه

خان جهان لودی یو زړه ور او وفادار اوبیکر ملګی او یو ځوانه انسان و دسلطنت دربار په دغه وخت کښې دسازشونو مرکزو او آصف خان وزیر اعظم داخبره ښو پیژنده چه پاچا د جهانګیر نه وروسته ځما خوم اوداماد شاهزاده خورم ( شاهجهان ) په تخت کښېني او دمغه

خور نور جهان بیگم چه دسلطنت په چارو کښې دخیله او د جهانګیر په زړه ئې قبضه
کړی وه داخبره غوښتله چه دجهانګیر نه وروسته شهزاده شهریار پاچا شي اوبخپله جهانګیر
شاهزاده پرویز دولیعهدی دپاره ټاکلی و او خان جهان لودی او خان خانان او نور امراء
ددی خبری طرفدار وو، نور جهان بیګم خان جهان دبرهان پور نه دی دپاره راغوښتلی و ترڅو
دی دخپلی تأثیر او اثر لاندی راولی اوپه کوم ذریعه دی دشهریار هوا خواه او معاون کړی
او آصف خان په دی کوښښ کښې و چه خان جهان دخورم طرفدار کړی هر کله چه
دجهانګیر دولیعهدی دمسئلی په معاملاتو خبری اتری اومذاکرات شروع شو اوبخپله خان جهان
لودی هم په دغه مجلس کښې حاضرو ددربار ټولو حاضرینو او دنور جهان او آصف خان
طرفدارانو په اتفاق سره دشاهزاده پرویز بد شروع کړل اوټولو درباریانو د شهزاده پرویز
سره مخالفت ښکاره کړ اوپه دی خصوص کښې ئې دخان جهان څخه چه په ټولو کښې ښه
او ثقه شاهد و تائید وغوښت که خان جهان دنورو امراو غوندی پو چا لاڅ او زمانه ساز
شخص وی نو دوی سره خوبه ئې کړی وی، چه هیڅ به ئې نه ویلی اود دغی کار په مقابل کښې
به ئې دخاموشی او چپ والی څخه کار اخیستی وی لیکن دی ددغی راز اشخاصو څخه نه و
اوپه ډیره آزادی او جرئت ئې دشاهزاده پرویز او خان خانان اوصاف او ښه والی بیان کړ
او یوازی دهغو بی ګناهی ئې ښکاره نه کړه بلکه دهغه اوصاف ئې په پوره راز دلائلو
ښکاره او ثابت کړل چه باید هغوی دسلطنت مستحق شي ددی بیان په مقابل کښې ټول غلی
شو ـ یوه ورځ شهزاده خورم ( شاهجهان ) دخصوصی دربار په یو تکلفه صحبت کښې
موقع و موندله او پاچا ته ئې وویل که زه دی دد کن ناظم مقرر کړم او د شهزاده پرویز
په ځای دی برهان پور ته ولیږی زه به په پوره کمال کښې د احمد
نګر او بیجا پور دواړه سلطنتو نه فتح او په محروسه وممالکو کښې به ئې شامل کړم ،
وزیر اعظم آصف ددغه تائید وکړ لیکن خان جهان لودی بی له کوم فکر او تأمل څخه
شهزاده خورم په دی مضمون مخاطب کړچه داخبره بالکل ستاد شان څخه مخالف ده ته دخپل مشرورور
تحقیر کوی اوته کشرئی اوغواړی چه په مشر باندی فضیلت حاصل کړی اوته هیڅ کله کامیابی
نشی حاصلوی ـ که څه هم دخان جهان لودی په دی بیباکانه الفاظو جهانګیر خپه نشو اوته
ورباندی داالفاظ بدولګیدل لیکن دی الفاظو دشاهزاده خورم (شاهجهان) په زړه دغشی اوخنجر
څخه کم کارونه کړیوازی خورم نه بلکه دی الفاظو د آصف خان وزیر اعظم په زړه کښې هم
ناسور جوړ کړ اودخان جهان لودی هم دا الفاظ ددغه تباهی اوبربادی موجب شو اونور جهان هم ددی
آزاد عسکری اوصاف ورونکی سردار څخه مایوسه شوه ددی خبرو نتیجه داشوه چه ټولو
ددی خبری کوښښ وکړچه خان جهان د ګجرات په حکومت اوشاهزاده پرویز د برهان پور څخه

کښې هیڅ کومه اندیښنه پاتې نه شوه. خورم د ګجرات صوبه دار خان جهان لودي څخه پیغام راولیږه چه
ته سفارش وکړه او د پاچا څخه د خطا معافي وغواړه او مهابت خان هم د پاچا څخه مت ته وکړه او
تقصیرات یو درخواست ولیږه د دواړو تقصیرات او خطا ګانې وبخښل شوې خورم (شاهجهان)
په دکن کښې پاتې شو او مهابت خان د بنګال څخه شاهي دربار ته راوغوښتل شو او خان جهان
لودي د دکن په ناظمیت ټاکل شوی او د ګجرات نه برهان پور ته تبدیل کړی شو.

مهابت خان چه په پخوا د نور جهان په حکم او اشاره کارونه کول اوس ئې د آصف خان
د مقاصدو په تائید پیل وکړ ده د بنګال څخه خپل ځان په دیر بنه شان سره مستعد کړی
او د راجپوتو تازه عسکر ئې نوی بهرتی کړی د خپل ځان سره را وست. او راغی او غالبا
د آصف خان په مشوره او سازش ئې جهانګیر بندي کړ او جهانګیر د مهابت خان د قبضه
څخه د خلاصیدلو نه وروسته لنډه موده وروسته یعنی د سنه ۱۰۳۷ د صفر په میاشت کښې
مړشو او شهریار ده په تخت کښیناست او ووژل شو او د هندوستان حکومت شاهزاده خورم
ته په لاس ورغی چه د شاهجهان په نوم د هندوستان مشهور پاچا شو.

هر کله چه شاهجهان په تخت کښیناست نو د ټولو امراو منصبونه ئې جګ کړل
آصف خان په خپل پخوانی حال د سلطنت وزیر اعظم او مدار المهام پاتې شو او مهابت خان ته
د خان خانان خطاب ورکړ شو. د خان جهان لودي خبرې پاچا او وزیرانو ټولو ته
یادې او معلومې وې لیکن فی الحال ئې ده استیصال مناسب و نه ګانه او اول ئې ده ته
خبری انتظام وکړ چه پاید خان جهان د برهان پور څخه د (مالوه) لوی ځای په صوبه داری
تبدیل او مهابت خان خان خانان د دکن ناظم مقرر کړیشي او خان خانان ته حکم ورکړ شو
چه ته د خپلې خوا او خپل طرف نه خپل خوی خان زمان سره برهان پور ته ولیږه خان جهان
د برهان پور څخه مالوه ته راغی او تر اوسه لا په اطمینان ناست نه و چه جهجار سنګه
ونر سنګه بو بندیله د سرکشي علامې ښکاره کړې. د هغه د سرکوبی دپاره خان جهان څخه
حکم ورسید او څیني نور شاهي امراء هم په دې مهم مامور شو. خان جهان په دې مهم کښې
اسکه چه رنګه چه توقع کیدله خپل قابلیت او شجاعت ښکاره کړل او نوموړی بندیله
ئې مغلوب کړ او د شاهي حکم سره سم ئې د هغه د مقبوضی لویه برخه د هغه څخه بیله کړه او د
یو درون تاوان واخیستلو نه وروسته د هغه خطا معاف کړی شوه.

خان جهان لودي د هغه کار نامه د شاهجهان د جلوس په اول کال کښې ښکاره کړه
لیکن دې کار نامې هغه خولته پرانه نستلې شوه لومه قوته چه ده به نسبت د شاهجهان
په زړه کښې وه او آصف خان وزیر اعظم او د دربار نور امرا هم په ده پسې ودا واله
نه څخه د کسات او انتقام په فکر کښې وو او ده ته راز هیڅلی او تور یالی شخص کوم

بطرنساك مهم ته ليږل اود هغه دمصر كيسه خلاصول كوم كران كار نه و اوپه دې تجويز
باچا لـه دې الزام او بدنامي څخه چه سړي نه پېژني اويا دقدر داني حس نه لري دالـكښ
مون پاتي كېده ليـكن په دې تجويز كښي نه دخان جهان اودې شهرت او عزت ته كومه
دمه رسيدلـه اونه په دې كـار دپاچا او وزيرانو تولو دا انتقام جذبه سړيدلـه لـه دې كبله
دوى خان جهان ته ډېر مهلت نه ور كـاوه دې آگرى ته راوغوښتـل شو او په ...ي بخپلـه
ي دپـاره دپاچا حضور ته حاضر شو، چهدججوړ سنـگه بنديـله دمهم فراغت او كـاميابي
ار كي د پـاچا حضور ته عرض كـړى پـاچا ده سره په ظاهر كـښي ډېر ښه وضعيت و كـړ
كن ده ته ئي مالوه ته د ډېرته تـلـلو اجازه ورنه كړه اودې څو ورځي په آگره كـښي
اتي شو اوهره ورځ به دپـاچا دربارته حاضريده په دغه وخت كښي د كوم صوبه داريدنه
لي صوبه داري ته نه ليږل كوده جز وى او معمولي خبره نه وه او خان جهان هم لـه دې
ز عمل څخه لاد پخوانه ويريده اوپه دغه وخت كښي دته دا خبره معلومه شوه چه دې به د
ى اهل او عيال سره گرفتار اوپه ډېر بد مرگك به ووژل شي ، ددې خبرى په اوريدلو
ن جهان ډېر پرېشان شو اوده دخپلي دروازى په مخكښي هغه پښتانه عسكريان چه ده سره وو
ه دارانو په حيث مقرر كړل او دربـارته تلل ئي پريښودل دمنتخب الـلباب مصنف ليـكي
دمخلص خان زوى دخان جهان دزوى سره دوستي درلوده دغه دولت خان جهان زوى ته په
لـه يوه ورځ ويـلـى وو چه خان جهان ته به ډېره زرسخته سزا ور كـړى شي هم لـه دې
ى څخه دخان جهان په زړه كښي وهم پيدا شو مگر دا دنومودى مؤرخ يوه ساعت ټيرى
شاهجهان يو غير مفيد و كمالت دى اودا څكه چه خان جهان لودى لـه كوم وحشى اوه
ت نه بى خبره سړي و او نه يو دامى دغ.و.و بى تجربه سړى وچه د كوچنيانو په خبرو اوتو كو
ليده ـ دى ډېر لوى سړي او اولهدرجه امير وچه دخان جهان اودپاچادخوى والى خطابونه
ى اودد كي دخلوروصوبو نـائب السلـكو نگى ئي كړى وه اود جها نگير په دربـار كښي ئي
او امراو څخه زيات عزت او وقار درلود او دا هغه شخص و چه عبدالرحيم خانخانـان
زا عزيز كو كه اومان سنگه غوندى مجرمان ئي پخپل سفارش د شاهزاده پرويزد سفارش
سته د شـاهي عتاب څخه خلاص كړي وو او د جهان گير پخصوصي ، مشورو كـښي ئي
ږ وزيرانو څخه زيات د خپلي رأى د اصابت او ښو او صحيح مشوری ور كولو امتحان
ي و دى د نورى اوقلم ددوانړو خاوندو يعني برسيره دشجاعت اوتوريالى توب په خصوص
ئي د پوره علم او فضل خاوند هم و ده اول عمر د جنگك په ميدان او سپه سالارى او
تو او دپاچايانو په مجلسونو او نديمى كښي تېرشوى واودده ناسته پاتېد شاهزاده گـانو
يرانو سره وه او دى پخپله د صاف زړه او رښتيني ژبي او پوخ قول او لوز

دخان جهان دزړه ورتیا اوتوریالیتوب اوعسکریت اوسپه سالاری اولیاقت او مړتوب ترجماني
په ښه شان سره کولی شی او دخان جهان دزړورتیا او میړانی اندازه له دی کاره ښه هم
په ښه شان سره کیدلی شی چه دی د آ گری نه پټ ونه وت بلکه دوولونو او نقارو سره په
ښکاره ووت .

## د چمبل جنګ

دآگری نه ۱۸ کروه په لیرې چه لمر څه قدرته را پورته شوی او د آسمان په غاړو کې
ورانګی خپری کړی وی خان جهان دچمبل نومی سیند څنګه دپوری وتلو دپاره بیړی راغونډولي
چه په دغه وخت کښې دشاهجهان لښکری دغه ځای ته ور ورسیدلی خان جهان په ډیره بیړه او
تلوار خپلی ښځی او کوچنیان دسیند بلی غاړی ته پوری ایستل او پخپله دسیندی غاړی ته پاتې
او د حمله را وړونکو لښکرو سره ئی په مقابله پیل وکړ او دغه لږ شان لښکر د ډیر
زیات مجهز شاهی لښکرو سره په جنګ بوخت شو د یوی خوا د شاهجهان لښکر و ته مسلسل
قوة الظهر اونور لوازم را رسیدل او خان جهان دخپل ډیر لږ او بی سامانه لښکر سره دسیند
پرغاړه په یو داراز ځای کښې دلښکرو سره مقابل او مقاومت شو چه بالکل د یو خوا بل خوا
کیدلو ځای اوموقع هم ور ته پلاس نه ور تلله او دیوی خوا لښکر و او د بلی خوا سیند محاصره
کړی ؤ لیکن سره ددی هم هر کله چه دغه ډیر زیات لښکر ددغه ډیر لږو نښتیالو پښتنو د
لښکرو سره مقابله وکړه نوداخبره ورته ښکاره او معلومه شوه چه د چمبل په غاړه د ښکو
دیوال نه و بلکه نن دچمبل په غاړه دفولاد ویو داراز غر تشکیل شوی دی چه هر کله ورسره
دشاهی لښکرو سیلاب تصادم کوی نو یو داراز هیبت ناک آواز ترې پورته کیږی چه د کیږ
چاپیره علاقوخلک ورته حیران پاتی وی . دمقابلی اوتصادم نه وروسته دجنګ دمیدان څخه ډیر
سخت هیبت ناک آواز پورته شو او زړه ورتیا او ځوانی مردی اومیړانی په دغه ډګر کښې
دخپل مخ څخه پلو پورته کړ او دخپل جمال ننداره ئی سری ته وښوو د له شجاعت
دمرو مغرونه مجول اوتهور په وینو کښې پړاته اوڅوبل تیرندونکی ځوانان دخپله سینه پوری
مخل دوینو یاران دځمکی مخ تلک سور کړ اودمقتولینو دوینو ککړو وجودونو په دغه سور ډګر
نقاشی کار شروع کړ اودسیند بلی غاړی ته ښځی او کوچنیان دسکتی په عالم کښې مبهوت اوحیران
ولاړ اودخپلو مړونو اوورونو اوځامنو دمیړانی اوتوریالی توب ننداری کوی اود چمبل نومی
سیند روانو اوبوپه خپل خوږ آواز په دی مضمون پوهنه ورله چه دتوریالی ځوان دغه ځوان نوم دی
چه دجنګ په وخت کښې دتښتیدلو دپاره پښې نه لری .

ددی جنګ اوشخړی نتیجه داشوه چه دخان جهان دوه ځامن عظمت خان او حسین خان او یو وروره
شمس خان اوشمس خان دوه وروڼه محمد خان او محمود خان پښتو سرداران او (۷۰) تنو پښتنو دمړونو ډیرو

حضور ته حاضر شو او هغوته جنگ منصوبه ورکړ شو په دې خلکو کښې جادوراي‌د (سیو امرهټه نیکه) ساهو بهونسله دسیو امرهټه پلار اود جادورائي زوم اوجنگ بودجادورانو اخښي او پتنگ راو او تاوجي اونور مرهټيان په خصوصي ډول سره دذکر اوړ دوئو وړدي. چه دې خلکو ته شاهجهان ډیر ډیر جاګیرونه او جنګي منصبونه ورکړيدي. هغه، لادي وخت څخه دمرهټيانو حوصلې جګې شوې اوددې خیانت په اثر دنظامشاهي حکومت پستر کو کښې هم ددوي اهمیت ډیرزیات شو، اوپه مسلمانانو سردارانو کښې شرزه خان اوساداتخان هم ځکه د ذکر وړ دي چه دوي هم دشاهجهان حضور ته حاضر شوي او جنګي منصبونه ئې اخیستي دي اودشاهجهان داتدبیر نه یوالحي داحمد نګر دریاست دپریشانی موجب شو بلکه دې تدبیر خان جهان لودي، هم ډیر متفکر او حیران او پریشان کړ

## دراجوري جنګ

دیورته ذکر شوو غدارانومرهټيانو دخیانت او د شاهجهان دترغیب په اثر، د مرهټيا و جهیتونو انګلیسانو خپل ځان سره . . . . شامل کړل دسمندر دغاړې ډوي ته ئې داحمد نګر ریاست ته ډیر مشکلات پیښ کړل او ددغو تدابیرو په اثر داحمد نګر ریاست ته ډیر مشکلات پیدا شو ، لیکن خان جهان دیوې خواڅخه شاهي لښکري دوړانده‌ي تللو څخه منع کړي وې او دبلې خوانه ئې ددې خبرې کوښښ هم کاوه چه دانګلیسانو او مرهټيانو دغه دفتني او د هم قلع کړي. کوم شاهي لښکر چه د خان جهان په مقابل کښې جنګيده خان اعظم ددغې لښکر اوې جه سالار و او هم دالښکرو ټولونه لوی او ډیر اوقوي لښکرو هر کله چه اعظم خان تر ډیرو ورځو پورې کوم کارونه کړيشو اودغه ئې څه پورو نه شو نو شاهجهان داعظم‌خان پرځای آصف‌خان دوزیراعظم اوسپه‌سالار په حیث . ډ ځان پور څخه ولیږه ـ هر کله چه اعظم خان په مجبول کانئون نامي ځای کښې د آصف د ماموریت ومقرري څخه خبرشو نوډیر پښیمان اوشرمنده شو ـ اوهم پدې وخت کښې داخبرهم راورسېده چه خان جهان لودي دمرهټيا و او انګلیسي باغيانو دسرکوبي نه فارغ شوی اود خپل ډیرلږ جمعیت اواهل اوعیال سره په داجوري نومي قصبه کښې مقیم اودشاهي لښکر له خوا . دا لکل طمئن اوبیغمه‌دی اعظم‌خان دخپلو هغو ناکامیو تلافی دپاره چه تر اوسه ورته پیښ‌شوي وې ئې د غه موقع غنیمت وګڼله او د آصف درارسېدلو څخه وړاندې ئې دیو ډیر قوي او برار لښکر سره حمله وکړه اوخان جهان لودي ئې ګیر اومحاصره کړ . داعظم خان سره پدې حمله کښې بهادرخان د دریاخان لجوي او راجه جي سنګه او راجه تبهوانداس اوسپهدار خان رخواص خان او سردارخان او مرحمت‌خان او اهتمام خان دتوپ خانې داروغه اوتاهر داس

جهاله او راجه ټوډرمل او راجه بهار سنګه بندیله او خان زمان او مرزا اسپ د مهابت خان
ځامن او شیرخان او شاه نوازخان او چندر من بندیله او کیلوجي مرهټه او اجي رام مرهټه او
جګدیو مرهټه او صف شکن خان او نور لوی لوی سرداران شریک او موجود وو . خان جهان لودي
ددې ناڅاپي بلا او ناګهاني مصیبت په مقابل کښې هم ډیر عزم او استقلال د لاسه ورنه کړ
او ځینې کلاوې او کوچنیانې دخپل نور اسباب او لوازمو سره دلږدو غرونو دروته ولېږلي او بیا یې
دخپل کوچني جمعیت سره چه ددوه درې زره دوفادارانو دوستانو او خپلوانو څخه تشکیل شوی و په مقابله
وخت شو او دشاهجهان لښکرو ته یې بیا دوباره دجنګ ننداره وړ وښودله . په دې
شور کښې خاصه او ذکر او یادونې وړ خبره داده چه بهادرخان د دریاخان ځوی د شاهي
مقدمة الجیش سردار او په اولو کښې زړه ور سړی او بلې خواته ددې پلار دریاخان او دي دخان جهان
لودي همدم او دوست او لوی سردار او دا دواړه پلار او ځوی دیو بل سره سخت دښمنان او دیو بل
دوینو تږي وو . دخان جهان لودي دیوه ورار نوم هم بهادر خان و او دی په زړه ور تیا او
میړانه کښې ددریا خان دځوی بهادرخان حریف او مقابل و . خان جهان لودي او دده ملګري
شاهي لښکر داسې ګیر او محاصره کړل چه په ظاهر کښې ددوی د خلاصیدلو او کومه خواته
وتلو کوم یو صورت نه لیدل کیده او شاهي لښکرو بې شمیره په غشو او توړو اونېزو او خنجرونو
او بلو دشاهي لښکرو بې شمیره برخه په توپکو هم مسلح وه په دغه ځای کښې ډیر سخت جنګ او
خونړي مقابلې وشوې او په دغو مقابلو کښې بهادرخان د دریاخان ځوی دشاهجهان د لښکرو یو
یاوړی سردار څوځایه په غشو او نېزو باندې ډیر زخمي شو او بیا له دغو زخمونو څخه مړ شو
او ده سره تاهر سنګه جهالا هم وو ژل شو . د یو سخت جنګ نه وروسته په شاهي لښکرو کښې
نماتي هلاهي ښکاره شوې او ټول لښکر یوې خواته او ټول اود یوې خوا ته په خوا کښې
شو شو او خان جهان په دغه وخت کښې څه دخپل حریف په مغلوبولو کښې مصروف و په میدان
ښکته او بې بدل کیده شاهي لښکر دخپلو ځانونو دساتلو او ونه وروسته بیا حمله وکړه او په دې
حمله کښې دمړو ډلې او ډیری جوړ شو او دتوړو ډیری او بې شمیره دځلیدلو نه وروسته د غږ
په درو کښې ده دیوې خونړو وښودلو او د ننګیالو پښتنو میړاني او زړه ورتیا دشاهجهاني لښکرو
عقل سرته واوښت او په دې جنګ کښې دخان جهان ورار بهادرخان دجنګ په میدان کښې شهید شو
او دوست او دښمن ټولو دپښتنو ولسي او میړانې درس زده کړ او ځان کوټه نې دا خبره ښکاره
کړه چه پښتون ځلمي دمیړانې په ډګر کښې ځان څه رنګه فدا کوي : خافي خان لیکي چه

« هر گرا زخم کاری میرسید آرزوی زخم دیگر نموده قدم جرأت بقصد سربازی پیش
میگذاشتند تا آنکه بهادرخان ازطرف خصم اززخم پای بپای از پا در آمد بهادرخان گاه از
بسیاری زخم افتاده بود چون رمقی باقی داشت بمدد غیرت ازجای خود برخاسته باز رو به

ما دهوسنگه او پسکه تاز خان او نورو سردارانو ته ئې لښکري ور کړې او قول ئې په دې
خبره ماموړ کړل چه د نربدا نومې سیند ټول گودرونه د کنټرول لاندې و نیسي او په ډیر
دقت سره د دغو گودرونو محافظه وکړي او خان جهان لودي ته ددې خبرې موقع ورنه کړي
چه هغه د نربدا سیند څخه پورې ووځي او د هر سردار سره دوه دوه ( گرزبردار ) ددې
مقصد دپاره مقرر کړیشو چه د یو سردار خبر بل سردار ته رسوي په دې ترتیب د دغو گودرونو
په محافظت دوه سوه ( گرزبرداران ) مؤظف شو او له دې څخه داخبره هم معلومیږي چه
ددغو گودرونو دساتنې او لښکرو دا داري دپاره سل تنه سرداران مقرر او تماگل شوي وو
خان جهان لودي له دغې سیند څخه پورې وت او هیڅا دي دپورې وتلو څخه منع نه کړي
شو . خان جهان دمالوې او راجپوتانې غرونه او دا گونډه او ځنگلونه او لوی ډوری
تیرشو او ویستلی او تر دیپال پور پورې ئې ځان ورساوه په ظاهر کښې خو احمد نگر او
دیپال پور په اشکال یو معمولی شی معلومیږي لیکن دهندوستان په نقشه کښې چه د فکر
او معلومات خاوندان احمد نگر او دیپال پور وګوري او دغه فاصله ځان ته معلومه کړي
او په دې خبره هم ځان پوه کړي چه په دې لیار کښې کوم کوم غرونه او سیندونه او ښارونه
او قصبې پرتې دي او بیا دا موضوع هم د نظر لاندې ونیسي چه په برهان پور کښې شاهجهان
دهندوستان دټول بر اعظم بیا څا دپوره طاقت سره پروت او د خان جهان د هر حرکت او
هر کار په پوره طاقت سره تعقیبات کوي او د هغه وینو ته تږی ناست دی نو په دغه
وخت کښې په ورته دا خبره ښکاره او معلومه شي چه د خان جهان دزړو اوبیا دولسو سوو
هغو پښتنو سره چه په موږ موږ د جنگونو او شو گیر و ځپلی وو تر دیپال پور پورې
رسیدل کوم معمولی کارونه و او که ډ ی د افغانستان د غرونو پورې ئې رسیدلی وای
نوداخبره بالکل ممکنه او یقیني وه چه د شیرشاه اعظم سلطنت پرته د پښتنو لاس ته ورغلی وای
او شاهجهان به هم لکه دخپل ورنیکه همایون غوندې په ایران او هندوستان کښې وږدي وږدي منزلې
کړي وای لیکن پاک خدای ته په دغه خبره منظوره نه وه بلکه پاک خدای ته به دا خبره منظوره
وه چه دحضرت عالمگیر علیه الرحمه په ذریعه په هندوستان کښې اسلامي اثر قائم کړي . د پښتور
او پنجاب صوبه داران هم غافل نه وو او دې خبرې امکان نه درلود چه خان جهان لودي
د دیپال پور څخه وړاندې راشي او د پنجاب او یا سیند په میدانو کښې یا گرفتار او یا قتل
نه کړیشي . د خان جهان د خبر داروېدلو سره سم د جالندهر نه نیولی تر پېښوره پورې په
ټولو جوړو کښې حرکت او فعالیت پیدا شو او هم له دې کبله خان جهان لودي د دیپال پور

زه نشوایم چه د میړانې او شجاعت د هغه کل د زمري خان جهان د شجاعت د دې وروستو ساعتونو حال په خپل قلم ولیکم ، خافي خان د خان جهان سره بالکل هم نږدې نه لري او د دې د خان جهان په بدو ویلو او خان جهان د ننګ‌ځلو کولو څخه بالکل پاك او بې پروانه کوي او تل د هغه د ذات او شاهي تذکره په ډېره خوشحالي سره کوي . زه په دې ځای کښې د خافي خان خپل الفاظ نقلوم .

«خان جهان چون شیر تیر خورده و زخم رسیده فرش کنان به نبرد رستمانه پرداخت .

بیت

خرامیده شیران بگشت آمدند — نهنگان ز دریا بدشت آمدند

در آن عرصه شوری برانگیختند — که در چشم مغز نهنگ ریختند

ز برنده یکتهای شمشیر کین — لب زخم بر تیغ گفت آفرین

و آن از جان سیر آمده خون گرفته در عرصهٔ کارزار به هیچ وجه کوتاهی نه نموده داد مردانگی میداد تا طناب عمرش به تیغ اجل بریده گشت و به برچهی ماده هو سنگه از پا در آمد و با وجود زخم دیگر که به پای رسیده باز بعد از افتادن خود داری نموده نشسته تادم واپسین از دوست و دشمن آفرین شنیده در جواب معاربهٔ حریف کوتاهی و پهلوخالی نه نموده تا رسیدن سید مظفر خان بدستیاری حربهٔ جانستان به عالم بقا شتافت ، گرینده شاه قلی نام گرزبردار سر او را از تن جدا ساخت .»

په دې وروستي جنګ کښې هم خان جهان لودي د سید مظفر خان پر نمسي او ( ۲۷ ) تنه نور شاهجهاني توریالي د خان څخه مړه کړي او ورانه کړل او دی هم شهید شو . د زمري د زغ څخه ډېر لوی پهلوانان ویرېږي او د ډېرو تورو یالو د ویړی مټیازی خطا کېږي او په کوم وخت کښې چه زمري په پسو حمله کوي نو بیا په لکی کښېږي او خپله مدافعه کوي او په کوم وخت کښې زمري وغږ میبېږي نو مونږ په خپلو سترګو لیدلي دي چه ډېرو خلکو په پښو کښې بڼی ارتې شي لیکن مونږ دا ننداره هم کتلې ده چه بوډه پسر کمزوري سړي د زمري پوستکي وباسي او دهغه برې تونه او دبرې تونو و پښتان په ډېر اطمینان سره په اورلګیت بانډې سوزي او کوچنی کوچنی هلکان او اطفال دهغه لکي را کاږي او دهغه په سترګو کښې ګوتې منډي . هوښیار خلک له دې راز منظره څخه عبرت اخلي او غافلان له دې راز چارو څخه په بې پروائي سره تېرېږي .

دپورته ذکرشو ودوو زروئور یالو څخه دخان جهان دشهادت ئەورسته د یش ته ورپالی ئو یاتې شوې ووچه دغو ننګیالودخان جهان اهل اوعیال .. . . . د ښان سره و ساتل چه له دغو خلکو څخه ځینې په مختلفو ځایو کښې ونیول شو او پاتې بیا خیل ښان په خان جهان باندې فدا کړ

هر کله چه عبدالله خان شاهجهان څخه دخان جهان سر یووړ بو شاهجهان فی الحال دعبدالله درسیدلو سره سم دته دشش هزاری منصب او دفیروز جنګ خطاب ور کړ او د خوشحالی شپئونه ئې برپا کړل او دشاهجهان زړه په آرام اوبی غمشو خان جهان د جمادی الثانی په اخر او یادرجب په شروع ۱۰۴۰ ه کښې شهیدشو دخان جهان فرخ ګوی سرشا هجهان ښار په ښار وګرځاوه

بیت

سر کشته سرنیزه می زد نفس ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ که معراج مردان همین است وبس

(پای)